دثور انقلاب داوومې کاليزې پهوياړ

# ديوانسبان برخه ليك

دميخائيل شولوخوف اثر

په پښتوژباړونکي: نجم الرحمن(مواج)



# دیوانسان برخه لیک

د میخائیل شولوخوف اثر

په پښتو ژباړونکی: نجم الرحمن مواج

۱۳۶۴

# دیوانسان برخه لیک

د میخائیل شولوخوف اثر

په پښتو ژباړونکی: نجم الرحمن مواج

۱۳۶۴

# ددی کتاب په برخه کی

دیو انسا ن برخه لیك کتا بچی د جنگ له نـاو ړو پیبنـو او نرا ژید یو نه پرده پور ته کوی اود فاشیزم په و ړاندی او دهغـه له‌امله له جگړی سره خپله کر که‌و ړاندی کو ی هو ما نیستی ا ړخ یی ډیر غبنتلی اودپام وړ وی .

پدی کتا ب کی که له یو ی خوانه د تعر ضی جنگ دنا خوا لو حقیقتو نه څر گندیږی . له بلی‌خوانه دنو ی تیپ انسا ن یعنی د سو - سیا لیستی ټو لنی انسان پایبنت‌او نه ما تیدو نکی او سپنیزه اراده په ژوره څیړی او څرگندوی یی.

دسو سیا لیستی ټو لنــــی‌انسا ن چی په وا قعیت کی دهو- مانیزم په رو حیی روزل شوی‌انسان‌دی هیڅکله دبل انسا ن د زورو لو لپاره نه یوا ځی هڅه نه کو ی‌بلکی‌که بل کو م څوك هم داسی ناوړی پیبنی ته لاس و ړاندی کړی لکـه‌د (( کریژ نف)) پښان یی له پښو نه غو رځوی اودشو م هد فـدسر ته‌رسو لو لپاره یی نه پریږ دی . تر هغه وخته پوری چی نړی او دنړی‌سو له د جنگو نو د سرو لمبــو

## ددی کتاب په برخه کی

له خوا تهدیدیږی ددی کتاب‌لوستلو ته به تنده احسا سیږی .

زه دا کتا ب هغو سر تیرو اوربښتینو هیواد پالو ته چی دخلکو، گوند ، انقلاب او هیواد له غلیمانوسره په تاو ده سنگرو نو کـــــی جنگیږی او یا یی خپل ژوند په دی‌لیاره کی قر با ن کړی دی اهـدا کوم .

نجم‌الرحمن.مواج

# د دی کتاب د لیکوونکی په برخه کی

دا کتا ب د رو سیی دپیژندل‌شوی لیکوال شو لو خف لیکنه ده.
هغه پــه ۱۹۰۵ کـــا ل د د ن درود خانی تر څنګه دنیا ته را غی .

د مشهور کتا بونو په لیکلولیکه ( آرام دن ) او ( دخاوری په
زړه کی) نړیوا ل شهر ت یــی‌وموند . هغه‌یواځی خپل دارزښت۔
نا که عمر پنځه لس کا له د آرام‌دن‌لیکلو ته و قف کړ. دهغه لیکنــــی
دنړی په بیلا بیلو ژبو ا ړو ل شوی‌دی او د هغه ( ارام دن ) لومړنی
رو سی اثر دی چی په‌انګلیسی ژبه‌اړو ل شویدی . ( دیو انسان برخه
لیك) په ۱۹۵۷ کال کی ولیکل شو او دسبك له پلوه دهغه له نورولوړو
لیکلو سره تا مه ا ړیکه لری .

شو لو خف په ۱۹٤۱ کا ل‌دخبریال په عنوا ن د جګړی لومړی
کرښی ته و لیږل شو .

په دی ځای کی وو چی هغه دجنګ‌له کورسو زو نکو ناخوالونه
تجربی حاصلی کړی.

دمور مړ ینه یی دناز یا نو په بهیر ورو لو کی زړه دردو نکی صحنه (دیوانسان برخه لیک ) په کتا ب کی مینځ ته راو لی که چیری داموضوع ور ته حقیقت نه در لود لی هیڅکله به دهغه په څر ګندو لو لوستونکو ته نه بر یا لی کیده . هغه دخپلوځلور کلو نو تجربو نه په جبهه کی ګټه واخیسته او ار زښتنا ك کتا بونه یی لکه ( هغوی خپل هیواد لپاره د جنګیدل ) او ( دکر کـــی پیژندنه ) یی و لیکل .

ددی درو کتا بو نو اساســدیو انسا ن برخه لیك پر بنا دیو پو چیا لوی او نه ما تیدو نکی روح ښکارندو ی دی . چی د پر له پسی ظلمو نو په و ړاندی اساس ایښودل شویدی .

هغه ثا بتو ی چی په آخره کی په نړی کی یو تلپا تی تو ب موجود دی . چی موږ ځا ن خوا ته راکا ږی او هسی سر چینه ده چی هېو نه و چیږی .

د جنګ پای ته رسید لو نـه‌و رو ســـــــتـه د د ن د رو د
پور تنی برخه کی د لومړنی سپرلی‌رسیدل د زیا تی ګنه ګوڼی سره‌مل
نه وو . دمارس د میاشتی پـــــه‌و روستیو کی داز د سین له‌ساحل
نه تاو ده بادو نه والو تل . پدی‌تو ګه چی وروسته له دوو ور ځونه
درودخانی کین خوا ته سا حل لوځ‌شو . جلګی،کاریزو نه او تنګی‌دری
و تړ لی شوی او له واورو نـــــه‌وپړ سیدل .

رود کنګلو نه مات کړل او په‌زغرده او لیو نتو ب سره به یی
ځا ن سره و ړل . لیاری له سره ورانی او دتګ را تګ داستفادی
وړنه وی. دکال پدی بـه مرغـــه وخت کی نا ځا په اړ شوم‌دیو کانو-
سکا یـــا کلی ته ننو ځم .

ډیره لیاره نه وه یور ځـــــی‌شپیته کیلو متره و . خو تیر یدل
تری ډیری سخته او ګرا نه وه . ددوست په ملګر تیا می د لمرختلو
نه مخکی رهی شوم .

دوه چا غ آسو نه په ډیـره‌ستونځه باندی یی هغه درونـــد
ورګو ن چی ور پسی تړل شوی ووکشول . ارابی یی تر محور (لټ)
پوری په واورو او کنګلینو شګوکی‌ننو تی وی .

لږه موده و روسته دآسونو ورنو نه او تسمی په ختو کی پټ
شول . د سهار نی تاز ه هوا دخولوله تند او مسمو مونکی او قیر ته
ور ته بوی نه ډکه شوی وه .

هغه ځا یونو کی چی د آسونوتیریدل ګرا ن وو د آسو نوترځنګه
پیاده تللو .

داو بلنو واورو پر مخ تگ‌چې‌دموزو لاندې يې شرپ . شرپ‌کو ل گرا ن کار وو .

دوا ت ځنډې لا هم د واوروپه‌پوښ چې څانگړ ی خلايي در لود او ليارو هل يې پدې برخه کې لــــه‌ستونځو سره مخا مخ کوو . پوښل شوي وو .

ورروسته له تقريبــا شپــږ وسا عتــو نــو نه يل انکـــــا رود ته چې ډير ش کيلو متره فاصله‌يي در لود و رسيدو .

د مـــو خـــو فسکـــــــې‌په کلې کې هغه رودخانه چې تقريبا په او ړې کې و چه وه اوس دسيلاوپښا نې ديو کيلو مترو په حدودو کې هغه شينلې با طلاق چې‌دتوسکابې اندازه و نې پکې شنې شوي وي پټ کړې وو .

اړ وو دتيريدو لپار ه له‌قايق(ماکو) نه چې لاند نې برخه يې بې سوري نه وه او له دريو کسانو نه‌زيات پکې نه‌ځاييدل استفاده‌وکړو. ساما نونه مو پريښول . درود نــه‌ايخوا ته يو زوړ جيپ چې تقريبا ټو ل ژمې يې ديوې کروندې‌دسايه‌وا ن لاندې تير کړې وو زمـــــوږ انتظار يې ايست . دمو ټـــروا ن‌پرملتيا له ډيرې و يرې نه په هغه زړه او وړو کې کرا چې کې سپاره‌شو لو .

دوست مې زمو ږ د شيا نو د پا تې کيد لو له امله سين غاړه کې پا تې شو . لا په خو زيد لوکې‌وو چې داو بو فوارې وماکو دتختو له مينځ نه وختيدې . څه شيا ن‌چې‌مو په وا ك کې در لودل په سوريو کې مو ومندل او په سلطونوباندې‌موټر بل سا حل پورې او به‌دباندې تو يې کړې .

که څه هم سين غاړه (ساحل)لرې وه . خوديو ی گړی نه ډ ير وخت يې ونه نيوه .

مو ټر وا ن د جيپ موټر يې‌له‌کلې نه را وړ اودماکو خوا تـــه و گرځيد .

پداسې حال کې چې يوه خپه‌يې پور ته کو له و يې ويل :

که دا ما کو دليار ی په مينځ‌کې ترمې . ترمې نشې په ډيره‌لنډه

موده کی یعنی درا تلو نــکـو دووساعتو نو پوری به د ملگری سره دی دلته به یم .

کلی له رودخانی لری وه او درودخانی په غاړه کی هغه چو پتیا چی معمولا دخزا ن په و روستیواود پسرلی په لومړ یو کی دلیری په مترو کو ځایونو کی حکم چلـــوی‌احسا سیده . کومه هوا چی‌درود- خانی سطحه یی نیو لی وه.مرطوبه‌تنده او د هغو تو سکا گانو په بد بوی چی دخرا ب کید لو په حال کی‌وو. لړ لی وه .

ولی هلته لری جلگی دبنفشوپه ټینگ او غبار لړو نکی رنگـــه سپوږمی کی ډو لی و ی اوملایـــم‌شمال‌لگیده او دخاو ری نامحسو- سه بوی یی چی لږ مخکی لـــــــه‌واو رو نه و تلی وه له ځا ن سره راو ړ .

دواو بو د خنگ شگو پرمـخ‌په نړید لی دیوا ل چی له دروو نه جو ړ شوی وو دسیگار څکو لو لپاره‌کښېنا ستم . خو کله چی مـــی سمد لا سه جیب ته لاس و ړ په نا امیدی سره متو جه شم چـــی سیگارو نه می د رود خانی نـــــه‌د تیرید لو په وخت کی لانده شوی دی .

کله چی د رود خانی نیما یی‌کی وو .یوه څپه زمو ږ دماکو(قایق) چلونکی تر څنگه و لگیده او زه یی‌ترملا پوری په هغو څڅنو اوبو کی ډو ب کړم. په هغه وخت کی می دسیگارو نو په هکله د فکر کو لو فر صت نه در لود . ددی لپاره چی‌سمد لا سه د څپی ( کشتی و هلو لرگی ) په ځمکه ایښود لو کـــی مجبور وو په سطلو نو ابانډی دهغه او به مو د ډو بید لو دمخنـــیو ی‌لپاره دباندی تو یی کړی . اما اوس دخپل دبی پروا یی نه نا را مه یم‌خپل لانده سیگارونه په پا ملر نه سره له جیب نه باسم په دوو زنگنوکښېنم . لانده سیگارو نه می چی قهوه یی رنگ یی ځان ته غوره‌کړی‌دی یو، یو ددیوا ل پر مخ ږدم . ماپښین وو . لمر دمی دمیاشتی تودو خه یی در لود او امید وارم‌چی سیگارو نه به می ژر وچ شی .

هوا دو مره توده وه چـــــی‌د تودو جا مو د رغو ستلو نه‌دلیاری

په اوږدو کی خوا شینی شوم . داد کال لومړ نی ور ځ وه. هوا پــه رښتیا هم توده وه . یوا ځـــــی کښینا ستل او ځا ن په چو پتیا او یوا ځی تو ب کی ډو بو ل هم یوه‌دنیا لری . غوره می و ګڼل چـــی دوړ یو خو له می له سرنه پور ته‌کړم ځو و یښته می چی وخپی‌وهلو په وخت کی لانده شوی وو ، نسیم‌ته وسپار م او وچ شی او خپله په آسمان کی دور یځو لو یو ټوټو ته‌ځیر شو م .

پدی وخت کی‌می پام شو چی‌یو سړی د کلی له اخرو خس کپو نه وا ټ ته ننو ته . هغه دیو ماشوم‌ګوټی لا س یی چی فکر نه کوم له پنځو او یا شپږو کلو نو نه زیا ت‌عمر یی در لود نیو لی وو . هغوی په ستو ما نی سره او په درنـدوقد مو نو درود خانی و چی برخی ته تلل .کله چی جیپ ته ورسیدل‌را تاو شو ل زما خوا ته را غلل. هغه لوړ و نی او لږ ټوغ سړی وو.پداسی حال کی چی زما خوا ته را ته په زیږ آ واز یی وویل :

ــ سلام ملګری .

پداسی حال کی چی خپل‌لاس‌می د هغه په پریړ لاس بانـــــدی ایښوده ومی وویل :

ــ سلا م .

وروسته‌پدا سی حال کی چی‌د کو چنی خوا ته ټیټیده هغه ته‌یی وویل :

ــ زو ی جانه کاکا ته سلام ور که . ګمان کوم هغه هم لکه ستا پلار پشا نی مو ټروا ن دی .

ټو ل مو ټر وانا ن خو لکه مااو تا پشا نی د لا ری چلو لوعادت نلری .

پداسی حال کی چی جیـــپ‌خوا ته یی اشاره کو له و ی ویل:

ــ دی د هغه وړ کی اتو بو س‌سره اطرا ف ته ځی .

کو چنی هلك دخپلو آبی‌رنګوستر ګو سره چی آسمان ته ور ته ووما ته ځیر شو او په ډیر زړورتیایی موسکا سره یی خپل کو چنـــی لاس چی د سړ ښت له زیا توا لی‌نه سور او ښتی وو زما خوا ته

وړاندې کړ . کو چنی لاس مـــی ټینګک وینو او ور ته می وویل :
ــ زوړ یی ، ساړه دې کیږي؟ولی پدې دومره توده ورځ کی لاس دی دومره سوړ دی .

دماشو متو ب اعتماد له امله چی انسا ن رحمو ی ځا ن یی زما په زنګنو و نښلوه . خپل بـــورووریځی یی داریا نتیا په حالـــت کی پور ته کړی و ی ویل:

ــ و لی کاکا جا نه زه زوړ نه یم . زه یو ماشو م یم ساړه می نه کیږي .

لا سونه می دواو رینو پنڼه وسکو جو ړ و لو له امله یخ شویدی.
کله چی پلار خپل نیما یی ډک شوی بکس له شا نه پور ته کاوه په ډیره خواری زما ځنګک تــــــه کښینا ست . ماشو م ته یی مـــخ واړ وو ی ویل :

زما د سفر ملګری دا ځوا نلو یه سرخو ږی ده . هم یی زه او هم یی خپل ځا ن ستړی کړی.که می ګا مونه او چت پور ته کړم. منڼه و وهلو ته اړ کیږی. پدی ترتیب اړیم دهغه په پښو لارشم، یعنی هـر عادی ګام می په دریو قد مونو پورته کړم .

زمو ږ حسا ب هما غه دا سی او دشمشتی (سنګ پشت) حساب دی . او له بلی خوا نه باید شا ته هم سترګو و لرم څو پوه شم څـه کوی ځنګه چی مخ اړوم پښبی لوڅی داو بو په ډنډو نو کی لیاره وهی یا واورین قندیلو نه ما تو ی اولکه چر ګو ټی پښا نی هغه روی .

نه سم کارندی چی له دا شان انسان سره دسفر ملګری شی .هغه هم بیا پیاده تګ چی څه عر ض وکړم .. کله چی چپ شو هغه وخت زیا ته یی کړه :

ــ ته ځنګه ملګری بادار ته دی منتظر یی .

ځنګه چی نه می غو ښتـه هغه ته ووایم چی موټر وان نه یم :

ــ همداسی یی بو له .

ــ ستا بادار د رودخانی لـه هغی غاړ ی نه را ځی .

ــ امکا ن لری.

ــ فکر کوی دبیړی رسید لنژدی دی .

ــ تر یو دوه سا عته نور .

ــ ښه . ښه فرصت دی .لږهډډه اچوو . بیړه نلرم .

محض چی ته می و لیدیفکرمی وکړ ته هم زموږ د ډ لـــی مو ټروا نانو څخه یی چی لمر ته ناست یی . ما ویل سره خبریوکړو او سگر ت وڅکوو .

څنگه چی پوهید لم یوا ځـیسگرټ څکول او پرو یس مړ کیدل سره لری ندی . لکه چی و ضعهدیهم بده نده . سگرټ هم لری .اوه ولی سگر ټو نه دی لانده دی .

ښه ملگری لانده تمبا کو هملکه دنارو غ آس دی یو هم په درد نه خوری .

ښه په و ی چی زما له شهلوتمباکو نه په بدل کی یی گټمـــه واخلو .

خپل دعسکری پطلو ن لـــهجیب نه یی دتمبا کو شلید لـــی و ریښمینه کڅوړه و ویستله .کلهچی هغه یی خلا صو له ومی لیده چی دا کلمی پکی گند ل شو ی وی .

د لبـــد یـــا نسکا یـــا د ښوونځی د ښوونکی له خوا یو له ډیر ومنلو سر تیرو تـــه وړاندی کیږی . مو ږ دوا ړو پـــه چو پتیا کی دهما غه وطنی اوترخو تمبا کو په څکو لو کی پیل و کړ.

غو ښتنه می پوه شم ماشو مهلك سره چیر ته ځی او څه شی هغه یی اړ ایستی دی چی پدی لوړوژورو کی لیاره ووهی و لی هغه وخت رانکړ پو ښتنه یی وکړه :

ــ آیا د جنگ په اوږدو کیجبهه کی و ی . تقریبا وم .

ــ په لومړی صف کی .

ــ هو .

ــ ملگر یه ما هم له حد نه زیاتپه خپله پدی جگړه کی رنځ گاللی دی .

خپل تور لاسو نه يي پهزنگنوکښېښود ل او خپلي او ږي يي‌لاندي وا چو لي .کله چي دستر گو لاندي‌نه مي ور ته کتل په عجيبه تو گه زوريدم .

آيا تر او سه پوري هغــــهسترگي چي پکي ايري تويي شوي‌ـ وي ليد لي مو دي .

منظور مي هغه ستر گي دي چي په هغو کي دبي حا صلو هيلـو غم ځپلي ا ثرو نه لوستل کيږي .

هغه ستر گي چي هغو ته‌کتل‌کيدی نشي زما تصاد في او اتفا قي دوست دا سي ستر گی در لودی ددرو ی له‌ديوا ل نه يي يو تاوشوی او وچ بناخگی مات کړ اويوه‌شيبه‌و شگو پرمخ ديوی طر حی پــه رسمو لو بوخت شو . و روسته له‌يو ی مودی نه يي ور سی دوا م ور کړ .

ــ ځينی شپي خو ب نه وړلم.فقط دشپي تيارو ته ځير کيږم اوپه مو ج کی ډوبيږم . دځان نه‌پوښتنه‌کوم و لی‌مي دا کار و کړ. د ژوند لپاره و . و لی مي ور سی فلجوی.و لی مي ربړ و ی . خو نه دشپوپه تيارو کی اونه دور ځوپه رڼاکی‌دی‌پوښتنو ته مي کوم خوا ب نشم موند لی ... نه . کوم ځواب نشم‌موند لی . رشتيا هم چي کوم‌ځواب به پيدا نشم کړی !

نا څا په پداسي حال کی چی‌څا ن يي چمتو کوو او جوړ وو د څنگل په لاند نی برخه کی دهلکي په اوږه وووهله او ورته‌يي وويل:

ــ لاړ شه زو يه لاړ شه داوبوتر څنگه لو بی وکړ . هر کله‌دلوی سيند تر غا ړه و ړو لپاره دلو بی‌شيان برابر دی . پام وکړه پښی‌دی لمدی نکړی .

کله چی دسيگار څکو لو پــه‌حال کی وو . په پلار او زو ی مــی غلچکی نظر وا چوو او دهغــوی دجا مو ز يا ت تو پير ته مي پام وشو . دهلکي ساده اوشړ لی‌جامی‌په څا ن کی و ی . و ړو کی حاشيه لرو نکی واسکټ يی چی دسگلاو پوستکی نه يي استر در لود اود څا ن په اندازه يي ووا غو ستی وو.هغه و ړی مو زی چی دو ړينــو

جورا بو سره يي پښو کي قالب‌وو. د هغه ظريف رفو ( پنځري) پــه
و سيله چي د لستو ني شليد لي برخه يي سره نژ دی کړی‌وه. ديوی
ښځی د کار نه يي کيسه کو له ،ديو ی هر مندی مور لا س .

د پلار ظا هر ی بڼه له د ی‌تير حالت نه ډير تو پير در لود :

دوا سکټ سوز يد لی برخه‌په خرگند ډو ل و تلی و. دخاورين
پطلو ن په مخ يي پيوند سم گنډ ل‌شوی نه وو . نا پيوند په هغوبخيو
باندی چی ديونا رينه کاردی دجامی‌په‌مخ يي وهيل شوی وو.

په آخره کی دی نتيجی تــه‌ورسيدم چي يا د هغه ښځه مــړه
شويده او يا د هغه اودښځی په‌منځ کی يی مخا لفتو نه شته دی .

په داسی حال کی چی پــــه‌ستر گو باندی يی هلکی د سيند په
غاړه شاره و ټو خيده او سر له‌نوی‌يی پر خبرو پيل و کړ. ما هم‌ترپا يه
غوږ ونيو . ...

* * *

زما ژ وند ډیر عا دی پیل‌شو.په ۱۹۰۰ کال کی په ورو نیـــژ
کی دنیا ته راغلم . دجنګ په‌وخت‌کی د کیك و ید ز پـــه لښکر کی
دسره اردو سره و م . د ۱۹۲۲کال‌په قحطی (کاختی) کی دکو با ن
خلکـــو تـــه مـــی ز یـــا رایسته اوخانا نو ته می لګه غوا یی
کار کوو . که چیری دا کار می نه‌کو لای اوس به د ژوند په قید کی
نه وای . د کورنی ټو ل غړی می‌چی‌په وطن کی وو پلار ، مور اوخورله
لوږی نه مړه شول او ډی تو ګه‌زه یواز ی پا تی شوم . څنګه چی
نژدی خپلوا ن می نه در لود .یوکال‌نه‌وروسته می خپله جو نګړه خرڅ
کړه له کو با ن نه ور وینژ تـــه‌و لاړم . له تر کا ن سره می کار
پیل کړ او وروسته د تخنیکی کارزده کړی لپاره کارخانی ته ولاړم.
ژرمی واده و کړ . له پالنځی نه می‌ښځه و کړه . هغه یتیمه وه هو ښه
ښځه می تور ته وا چو له د ښـــواخلاقو څښتنه . خندا نه او هرکله
به یی زما دخا طر رضا غو ښتله .هوښیاره وه او لدی کبله ماسره
یی مشتر که و جهه نه در لود له.له ماشو م تو ب نه دستو نځوسره
آشنا شوی وه اونا را می ګا نی دهغی په شخصیت باندی اغیزی
کړی وی . دمخ نیما یی برخه یی د پام وړ نه وو او ما هیڅکله دهغی
نیما یی مخ ته نه کتل او تل به می‌له مقابل لوری نه ور ته کتل. هغه
ما ته ددنیا ډیره ښکلی ښځه وه .

کله چی به ستومانه له‌کارنه‌راګر ځیدم . لکه زهر لرو نکی مار
بد اخلا قه و م .

ولی نه هیڅکله ښځه می پـــه‌تندی او بد خلقی سره د خبـــرو
ځوا ب نه را کو له .

ډیره آرا مه او متینه وه . سره ددی چی یی نشوه کو لی پـــه
کا فی انداز ه څه شی جوړه کړی ولی څه چی یی له لاسه کیده کوله
به یی . آ ن کله چی به می څه نه‌در لود د هغی لیدنه به می زړه ته
تسکین ښښه . کله چی به‌می له‌بدخلقی نه پښیما نید م لاسو نه به
می ور ته تاو کړ هغی ته به می ویل :

ـ گـرا نــه ایر ینـاله تاسره خپل‌دبدبر خورد نه خوا۔ شینی یم په کارخانه کی می بده‌ور ځ تیر کړیده سر له نو ی نه به سو له او صفا زمو ږ په منځ کـی‌رامینځ ته شوه او خو شا له بـه شوم . اوس د گوره ملگری چـی‌ښځه دانسا ن کار ته څومره‌مرسته کوی . لکه مرو کی (مرمی) پشا ن‌به‌هر گهیځ له‌خو ب نه را وا لو تم کار ته تلم . هر کار ته چی به‌می‌لاس و ړاندی کړ . لکه گړی پـه تر تیب ترسره کیده . په رښتیاهم‌چی غا یی هد ف ښی اوهو ښیار ی دښځی در لود ل هم همدا دی .

کله چی به‌می د لاس گتـه‌اخیستله له هلکا نو سره تلم اویو گیلاس به می پور ته کړ . کله‌نا کله به وروسته له شرا ب څښلو نه په غور زنگیدو زنگیدو کور ته تلم.ښا یی ددی صحنی لیدل ویره هم له ځا ن سره در لوده . که له‌فرعی‌خیا بانو نو . نه تیر شو نو اصلی خیا بانونه ( ور تو نه ) په کا فی‌اندازه ځای هم نه در لودل. هغـه ور ځی کی قوی او غښتلی و م. یعنی دا چی کو لای به می شو کله چی ډیر شرا ب می څښلی وو په‌ځانگړ ی تو گه کور ته و لاړ شم. کله به مجبور شو م د لا سونو . پښو او یا آ ن د سینی په مخ‌لاړ وای . سره ددی هم ایرینا به نه ملا متو لوم نه رټلم او غا لمغال‌به‌ یی په ما نه کو له . هغی به را ته‌خند لی . مسخره کو لم به یی او دا کار به یی پداسی حال په ماکوله‌چی دمستی په وخت کی هم په ما بدنه لگیده .

پداسی حال کی چی موز ی‌یی‌رانه د پښو نه و یستلی ما ته به‌یی یا دونه و کړه :

ـ اندو ه ښه به دا دی چی‌ددیوا ل تر څنگه ویده شی ځکه چی غیر لدینه به دخو ب په وخت کی‌دخو ب له تخت نه به لانـــدی و لویږی .

زه به لکه د تورو اور بشـــوخور جین لویدم اودنیا به می پـه سترگو کی څرخید له .

سمد لا سه چی به دخو ب‌په‌تخت لوید م نازو لم به یی اوپستی‌

خو ړي او زړه را ښكو نكى خبرىبه يى زما په غوږ كى زمزمه كړي، په دى حال كى به مى د هغى ترحمدځا ن په نسبت احسا سوو .

هر گهيځ دوه سا عته مخكىله كار نه به يى ويښو لم څو د په حال را تلو مجا ل پيدا كړم . څنگهچى پو هيد له وروسته له نشى نه ځه شى نه خور م يو تريو بادرنگاو يا هغه ته ور ته كوم شى به يى را ته راو ړه او دود كا گيلا س به يى را ته لاس راكړه څو دتيرى شپى د شرابو ا ثرو نه له سرمــىلرى كړى او وروسته به يى را ته وويل :

ــ گرانه گهيځ ! اندره ! جوړشوى يى . نور شراب مه څښه .

څنگه كيږى د هغه چا مخ چىدو مره اعتماد پهانسا ن و لرى په ځمكه ووهل شى . و دكا به مى پهسرو ا ړو اود هغى سره به مى په ستر گو كى او ښكلو لو سره .پرتهله يو ى كلمى خبرى كو لو نــــه خداى پا مانى كو له او لكه د هغوسى پشا نى كار ته تلم . باوروكړى كه چيرى ښځى مى ما سرهپه تندىسره بر خورد كو له او يا كلهچى به مست كور ته را تلم زيږ تيا يىښود له بيا را تلو نكى شپه هــم نشه را تلم دا هغه مو ضوع ده چىپه تكرار سره د هغـو نارينــــه و كورنيو كى مينځ ته را ځى چــىنا پو هى ماند ينى و لرى . زهخپله دهغوى ډير پيژنم او هغو ى مــــىليد لى دى .

ژر تر ژرهد بچيانو څښتــنشو لو.لومړنى زو ى او وروستنى دوه نجو نى و ى .

په دى وخت كى له پخوا نيودو ستا نو سره مى پريكړه و كړه او خپل ټو ل معاش به مى كور تهراو ړ او د خپلى ښځى لاس كىمى ور كوو . هغو ورځو كى متو سطفا ميل و او د شراب څښلو و خت مو هم نه در لودل . درخصتيو پهور ځو كىمىبير څښل او په همدى مى قناعت كوو ، ۱۹۲۹ كال ووچى مى پام ماشين آلاتو ته راو ښتاو دمو ټروا نى زده كړى نه وروستهمى ديوى لارى په چلو لو پيلوكړ. وروسته لدى نه چى په مو ټروانىكى د مهار ت څښتن شو م اومو ــ ټروانى مى ځا ن ته غوره كسب و ټا كه له كار خا نى نه مى لا س

وايست .

دعمر لس كا له مى لكه خوب اوخيا ل پدى توگه تيرشو بى لدينه چى زما ن ته پاملر نه ولرم . اصلالس كا له څه دى . له هر څلويښت كلن نه پو ښتنه و كړى‌نه‌پوهيږى‌چى زمان پهڅه شتاب‌سره تيريږى. وبه و ينى چى هيڅ كو چنى څيزور ته مينځ ته ندى را غلى . تير شوى لكه د لرى جلگو پشا نى په‌غبار كى ور نه ننو تى دى همدا نن سبا يى وه چى له هغه ځاى نـــه‌تيريدم . د هغه ځو ل ځايو نـــه رو ښانه او خلاص وو .

اما او س و روسته له شلـوكيلو مترو نه وينم چى‌هسى غبار- يى په سر كى خور شو يدى چى‌ونى له و ښونه او كر كيله لـــه جلگو نه بيلو لى نشم . هغو لـــوكلونو كى‌مى شپه او ورځ كار وكړ او ښى پيسى مى هم لا س ته‌راوړى‌وى . لكه دنورو خلكو پشا نـــى بد ژوند مى نه در لود .ماشو ما ن‌مو دخو ښى او هو ساينى و سيله وو . در ى وا ړه بريا لى لوستو نكـــى وو . انـــا تـــو لـــى تر ځو لو مشر په ر يا ضيا تو كــى‌دو مره پرمخ تللى وو چى نو م يى دمسكو په ور ځپاڼو كى و ليكل شو. زه نه پو هيد م دا ذاتى‌نبوغ- يى له چا نه په ار ث اخيستى وو .ملگر يه . په هر حال ما ته يـــى ډير ار زښت در لود او زه به هغه‌وياړ يدم . ډير هم و ياړ يدم .

ددى سو كلو نو په اوږدو كى‌مى‌څه انداز ه پيسى و سپمو لى چى په هغه مو و كړاى شو د جنگ نه‌مخكى د غريبى جونگړه چى دو ى كو ټى . يوه سا يه وا ن او وړو كى‌حو ض ( ړنړ) يى در لود . ځا ن ته جوړ كړو . اير ينا دو ى او زى‌وپيرو د لى . نور نو څه شى مو كم وو . دماشومانو شودى اودشيدووريجى ( شير برنج) هم تياريده . ښه چت مو په سر ته جا مى مو پهځان كى او بو ټ مو په پښو كى در لود لى . لنډه دا چى و هغه ښه‌وړه يوا ځى د جونگړى نا منا سب ځاى وو . چى دپام وړ نه وو . اوزمادى سليقگى نتيجه وه ځكه چى داځمكه دالوتكى‌جوړو لو دكارخانى‌تر څنگ وا قع شوى وو .

ښا يى كه چيرى دا دغر يبى‌جونگړه مى بل كوم ځاى كى جوړه

کړی وای ژ وند به می بل رنګه‌وو.

وروسته له څو مودی نه کورورانو نکی جګړه پیل شوه .وروسته یوه ورځ دا حضار کا غذ می‌ترلاسه‌کړ او د هغی ور ځی په سبا می په دی مضمو ن پیا م تر لاسه کړ :((لطفاً سبا ته څان مرکز ته حا ضر کړی .)) بنځه اوماشو ما نمی یعنی‌ایرینا او اناتولی . دخو یندوسره‌یی‌ناسیتنکایا اوالیوشکا بدر قه‌یی‌کړم. هلکانو د دی پیښی د تحمل تاب در لود ل و لی نجو نو ونشوکړای و زغم لیاره بی له ژ ړلوڅانته اواره کړی . انا تو لی هغه وخت‌سره د دی چی اوه لس کلن وو لکه هغو کسانو پشا نی چی ساڼه یی‌کیږی رپیده . اما زما ایرینا .. داسی حال کی وه چی پدی او لس‌کلن ژوند کی‌می هغه حا لت تـــه ور ته نه وه لید لی . کمیس اوولی‌می د هغی د دشپنی ژړا نه لانده‌وو. سبا یی هم هما غسی وه .

په تم ځای کی دهغی سری‌او تتی ستر ګی هغه یی لیو نو ته ور ته کړی وه .

صا حب منصبا نو دپور ته کیدلو امر وکړ ولی ایر ینا ځانـ یی زما غیږ ته واچو له . لا سونه‌یی‌زما د غاړ ی نه را تاو کړه لکه‌پری شوی ونه رپید له . هلکانو غوښتل‌هغی ته ډاډ ګیر نه ور کړی ما له هغوی سره مرسته کو له زموږ له‌لاس څه پوره نه وو . نورو ښځو به خپلو نارینه و او یا بچیانوسره‌خبری کو لی و لی زما میرمن لکه په ښاخ باندی زوړ ندہ پاڼه په مانښتی‌وه او یوه کلمه یی هم نه ویلی . پداسی حال کی چی هغی ته مـــی‌تسلی ورکو له ومی ویل:

ـ ګرانه‌ایر ینا . څا ن‌کنترول‌کړه . اقلا پدی آخره شپه کی ما ته څه ووا یه ... اودا هغه کلمی دی‌چی ما ته یی په داسی حال کی چی ژړ ید له په پریکړه، پریکړه باندی‌په وروستیو شیبو کی وویل :

ـ ګرانه ... اندره ... مو ږهلو ... پدی دنیا کی ... یو بل سره به ونه وینو ... زه مرم چـی‌مات زړه می در لوده او هغی ته‌می تسلی ور کو له . هغه وخت هغه‌داسی راسره خبری کو لی .ښایی هرو مرو پوهید له چی له هغـــی‌بیلیدل ما ته هم ګرانه وه . زه خو

ميلمستيا نه تلم . د ځا ن كنترو ل‌مي له لاسه ور كړه . دهغې لاسو نه
مې خپل له غاړ ى ته خلاص كړ اوشا ته مې ټيله كړه .

زه غمبتلي وم . په خپل سوچ‌هغه مې لږه ټيله وهلې وه . و لې
په حقيقت كې په هغې باندې مـې‌دغوا يې ضرر به وارده كړى وه چې
څو قد مه شا ته تللې وه . هغـــه‌وخت بير ته په لنډ و قدمو نوزما
خوا ته را تله . ما پرى غږ كړ .

دانو ښنگه خداى پا ما نى ده.مگر غوا ړى مړينى نه مخكى مـــا
خاورو ته و سپارى .

ولې ښنگه چې حال يې‌خراب‌و بير ته مې په غيږ كې‌ونيو له .

پداسې حال كې چې دا كلمې‌يې ويلې ور ته مې پام شو چـــې
نا څا په يې آواز چپ شو . او زگيرو يو پشا نې يې په ستو نى‌كى
ما تى شوى ... هغې پدى تو گـــه‌خپل احسا سا تو يو ځل بيا را ته
څرگنده كړه . كله چې‌مې دستر‌گولاندى ور ته و كتل آن يوه ښاخكه
او ښكه مې هغه په بى حا لته ايره‌ايز رنگو ستر گو كې‌وليده.داسې
ناست وو چې سر يې لاندى خوا ته‌ټيټ شوى وو. غټو لا سونو يې—
چې ملا ته تكيه شوى وو . دزنى‌او شو نډو سره يې يوځاى دريږ—
ديدل ورو . مې ور ته وو يل :

ـ خپل اختيار ( كنترو ل) له‌لاسه مه ور كوه . اصلا بيخوده .

لكه چې زما خبر يې اصلا نه‌او ريد لى . پداسې حال كې چـې
بخپلو احسا سا تو يې غلبه كو له‌په زيږ غږ او او ښتى لهجه يـې
زيا ته كړه .

ـ د ژوند تر و روستيوشيبودا عمر تر پا يه ځا ن به دخدا ى
پا مانى د سپين ستر گى تو پ له‌امله ونه بخښم .

بيا چپ شو او كو ښښ‌وكړ‌سيگار تاو كړى و لى د كا غذ ټو ټه
چې تمباكو پكې وو خپـر شوى‌او تمبا كو يې دور نو دپا څه توى
شول. په آخره كې يې په ډيره‌زيارسره سيگار يې تاو كړه . ترى د
خوند وره كش يې و كړ. سينه يې‌صا فه ، صا فه كړه اودوام يـــې
وركړ :

ـ ځا نمی دایر ینا له غیږی وایست . مخ می ور ته په لاسونه
کې وینو ښکل می کړه . شونډی یی لکه کنګل سړی وی . لـــه
ماشومانو سره می خدای پا مانـــی وکړه او ځا ن می په منډو، منډو
ور ساو او په یوخیز می ځان ور-وا چوو . اور ګا ډی پخپل ورو ـ
حر کت سره یی یو ځل یی بیا دخپل فا میل له ستر ګو تیر کړم،
لبده می چی بی پناه بچیان می‌سره‌را ټو ل شو ی په لو ړه یی خندل
او لا سونه یی خو زو ل . دایریناښځی می لا سونه بیوا که او په
سینه کی پرا ته وو شونډی یی لکه‌کنګل سپینی و ی . او دشونډو
لاندی یی څه شی ویلی او تنه یی‌را ته کمتله بد ن یی مخی ته‌راټیټه
شوی وه . لکه چی غو ښتنه یـــی‌دقو ی باد سره مقابله و کړی. د
ژوند تر پایه پوری په همدی حالت‌هغه له اوښکو ډ کی او په ګټلـو
ننو تلی ستر ګی . هغه سپینـــی‌شونډی او هغه بیوا که لاسونه یی
چی په سینه کی یی ځای در لودل‌په یاد به و لرم . دخیال په عالم‌کی
هر کله هغه په همدی حالت کـــی‌وینم او له ځان نه پو ښتنه کوم :
ـ و لی هغه . هغسی له‌ځا ن‌نه وشړم .
لا تر اوسه پو ری ددی پیښی‌خاطره لکه پخ چا ړه دننه می شو
کارو لی .
ـ په بلا یا تزر کف کی چی‌او کرایـن کـی د ی د پچـــی
اټو لو نه و روسته ګرو پو نـــه‌و ټا کل شو ل . ما ته یوه در ی
ښه ایزه لاری راکړه شوه چی‌دهغی‌سره د جبهی لومړی صف تـــه
و لاړ م. هو . ترخپله له جنګ نه‌خبر یی او ډیر توضیح‌ته ضرورت
نشته . پدی وخت کی سړی لـــه‌خپل کور نه ډ یر خطو نه اخلی‌خو
د ځوا ب لیکلو ته یی لږ بریا لی کیږی . فقط کله نا کله لیکـــی
(وضعه ښه ده لنډه شخړه مینځ‌ته‌را غلی ده ) . او یا امکا ن لری
دعقب نشیننی په وخت کی ولیکی(دنوی قو ت اخستلو نه ورو ستـه
دښمن ته مونو ی سرخو ږی‌رامینځ‌ته کړیدی ). پدی بد مر غه وخت‌کی
نور نو څه ښه و لیکلی شی ؟.اصلاسړی د لیکلو ز ړه او لاس نلری.
زه خپله‌هم انسا ن‌یم چی‌دمصیبتونودبیا یا دو لو سره مینه نلرم .ومی

گرانه ملگر یه . یو کیلو متر نورهلکانو ته پا تی وو چی و رسیږم له وا ټ نه ووتم اما هیڅکلـــه هغوی ته و نه رسیدم . ښا یی‌چی د لری وا ټن ویشتو نکو توپونو گو لی وه چی په ډیره سختی‌سره زما د لاری په مخکی په ځمکه کـی‌ولگیده .

هیڅ پوه نشوم فقط لکه پـه‌سر کی می څه شی و چاو دیږی بیخوده و لویدم .

دا چی څنگه ژوندی پا تی شم او څو مره وخت هلته لویدلی ـ وم خبر نلرم .

کله چی می ستر گی وغړولی و ی نه می شو کو لی په پښو ودریږم سرمی و دیخوا ، اخــوالویده لکه تبه ټرو نکو انسانانــو پشانی رپیدم . ټو ل شیا ن راتت‌ښکاریدل او کین او ښه می ډیـره خړ یك کو له ټول او بدن مـــی‌دردیده . لکه چی کوم سړی پـه ټو ل درونـد وا لی یی په مالویدلی‌وو . ډیر وخت دخیتی په مـــخ و لویدم . په آخره کی مو کوښښ‌و کړ په پښو ودریږم . لا نه پوـ هیدم چیر ته یم او څه را باند ی‌شویدی . لکه چی حافظه می‌بالکل له لا سه ور کړی وه . ډاریدم چی‌نور به د پا څید لو تاب رد کی‌نه وی . لکه ونه چی د باد ســـره‌مخامخه وی کله دیخوا او کـــلـه ایخوا ټیټید لم .

کله چی په خود شو مه او شاوخوا ته می و کتل . احساس می وکړ چی زړه می ددووانبردنوپه مینځ کی ځای نیو لی او ور ته فشار ور کوی . لا سی بمونه چی‌می انتقا لوو . شاوخوا ته څواره ګول . او ښتی لاری می چـــی څلور ارا بی یی په هوا کی معلقی ټوټی، ټوټی می څنگ ته سویدلی‌وو شا ته می جنگ هما غسی‌دوام در لود .

په څر گنده ډو ل پام می‌شوچی بد ن می په پښو بانـــــدی درونـد وا لی کوی .

لکه ونه چی په تبر یی پری‌کړی ولویدم . د غلیم په جبهه کی او د هغو یر غمل وم .

د فا شيستا نو اسيرو فـرما يي دا هم د جنگ لاس تـــه راو ړنه !

زما دوسته . په دي‌موضو ع پوهيد ل دو مره آسا نه نـده . دانسا ن زړه نه غوا ړي چي اسيرشي . ډيره گرانه ده چي انسا ن و کړي شي هغه څو ك چي‌داسارت‌مزه يي نده څښلي د هغه شرايطو سره آشنا کړي .

پخپل ځاى کي د ځمکي پـرمخ پا تي شوم . د زره پو شو نو آواز مي او ريده .

الماني څلور زره پو شو نه‌مي له څنگه په سر سا مو نکـــي گړندي تو ب تير شو ل او زمو ږپخواني مو ضع خوا تـــه لاړل . تصور کو لي شي چي په هغه‌وخت کي‌مي څه احساس در لود .

ورو سته هغه تراکتو رو نه‌چي تو پونه او آشپز خاني يـــي وړ لي و رسيد ل .

په آخره کي پياده نظام چي‌دهغوي انداز ه له يو ي ډ لي نه . نه زيا تيده تير شول . دستر گولاندي مي هغوي ته کتل . دهغوي په ليد لو د کانگي کو لو شديدحالت را ته پيدا کيده هما غسي چي په سينه پرو ت و م مخ ته‌مي‌په ځمکي کي فشار ور کوو .

پدي خيال چي گوا کي‌هغوي‌ټول تللي و ي سرمي پور ته کړ . شپږ سر تيري مي و ليدل چـــي‌سپك ماشينگن يي په اوږو درلودل اوزما نه څو قد مه لري يي ليار وهيل هغوي په‌همدي شيبه‌کي خپل تگ لوري ته تغير ور کړل .څنگه‌چي سرمي پور ته کړي وو هغوي هم زه يي ليد لي وم . نيغه، پـه‌نيغه زما خوا ته را غلل . لومړي په ټولو ځايونو باندي چو پتيـــاخوره شوه . څنگه چي نه مـــي غو ښته و يده مې شم کښيناستم‌و روسته پور ته شم او په پښو ودريدم د هغوي له جملي نه يو ځما په څو قد مي کي و دريد او ټو پك يي له اوږو نه واخيست.

رښتيا هم چي بشر عجيبه سر شت لري . دخندا ځاى دلته دى چي په هغه شيبه کي دو يري کو چني اثر هم په ما کي موجود

نه وو . هغه ترمی کتل او د هغی‌شیبی په چور ت کی و م. چی هغه زه یی وژلم. غوښته می پوه‌شوم چی دبدن په کومه برخه کی می غواړی گو لی ووهی . په زړه‌او یا په مغزو کی می . لکه چی توپیر یی در لود . پوهیدم‌دالعنتی‌گو لی دبد ن په کومه برخه کی‌می لگیږی !

ښکلی او دښکلی اندام لرونکی ځوا ن و . تور و یښته اونری تمتا نی شو نډ ی یی در لود ل.په‌سترگو کی یی د شیطا نی ر ڼا ځلید له . فکر می کاو ه په‌و ژلوکی می کوم تردید نلری . په همدی وخت یی ټوپك ځما خوا ته پـه‌نښه و ینوه . دیوی کلمی ویلو نه پر ته په ستر گو کی یی زړه‌وهلی‌شم . په همدی وخت کی یودهغوی نه چی فکر می کاو ه دهغـوی‌د جو خی قو ماندا ن او دټو لو نه مشرو و په حیفو هغه یی ایخوا ته‌وواهه . هغه وخت زما خوا تـه راغی دالمانی په ژبه یی څه وویل‌پیدا کړ . غښتلی غړی لـر ی زما د ښی مټ په ټیټو لو دهغه‌یی‌معاینه کړ . فکرکو م و یل یی :

آه ، آه. رایش ته می ښه کارگرپیداکړ. غښتلی عضلـی لـری . و روسته یی په لا س هغه وا مټ ته‌چی د هغه په آخره کی لمر لویږی اشاره و کړه . بد سری کار پسی‌مړوو. هغه بل چی توری سترگی-یی در لوده ستر گی یی زما لـه‌بوټو نونه نه لری کوو . څکه چی بوټو نه می د ښه رنگ او شکل‌لرونکی وو . په اشاره یی دستور راکړ، چی هغه له پښو نه وباسم. په څمکه کښیینا ستم . بوټو نه می وایستل اودوه لا سی می ور ته وړاندی کړ . زما له لاس نه یی چور کړ. پدی تر تیب می پـای‌تاوی می هم له پښو نه خلاص‌کړی هغه ته می وسپاره . همدا سـی ناست وم هغه ته می کتل. راتـه-یی غږ کړ . ښکنځلی و کړی . اوبیا یی په خپل ټوپك زه یی نښه وینو لم . نورو هم په لوړ لـوړوخندل .

لیار ی ته سم شـول اودلاړل . هغه سر تیری چـی توری ستر گی یی در لودی وا مټ تـه‌ورسید لو نه مخکی تقریبا در ی څلی زما خوا ته راستو ن شو . سترگی یی لکه دلیوه د بچـی

ستر گی له قهره ځلیدی . لکه چی‌ما درنه بو تو نه په زوره له پښو ایستلی و ی . ښه ملگر یه خـه‌می باید کړی وای .

پداسی حال کی چی‌کلیوالی‌بدی ښکنځلی می هغوی ته کو ا . وا ټ ته ورسیدم . لکه یو زندانی‌د لویدیځ خوا ته رهی شوم .

په هغه وخت کی پیاده تگ‌را ته گرا ن وه اودیو کیلو متر نه په‌یو ساعت کی ډیره لیاره مـــی‌نشوه وهلی . لکه دمستو ا فرادو پشا نی چی په یو عا دی ټکا ن سره دوا ټ ددی څنډی نه هغـی څنډی ته په غور ځو پر ځو ځی په‌لیاره تلم . پدی وخت کی خپـل یو گرو پ ته چی اسیر شوی ووا‌و تقریباً دالمان له لسو ساتونکو له خوا څار ل کیدل و رسیدم . د سا تونکو نه یو یی چی دنورو سر گرو پ وو . زما خوا ته را ته‌او پر ته له خبرو نه د ټو پك پـه لاند نی بر خه یی په کلکه په سر‌ووهلم . که چیر ی ځان می ځمکی ته غور زو لی وای . په یو ی‌گولی‌باندی یی ځمکی سره گنډلم .

دو ستا نو می زه یی وژ وغور لم او دعسکر ومینځ ته یـی بو تلم. تر یوه وخته پوری زه یی‌همدا شا ن په کشو لو .کشو لو وړلم . کله چی په خود شو مه یو له هغوی نه را ته وویل :

ــ ته او خدای مه لویږه. تر هغه ځایه چی توا ن لری په‌پښـو ودریږه گسی وژل کیږی. زه هـم لـه پښو لو یدلی وم زیـار مـی وایست تر هغه ځا یه چی توا ن وو له هغوی سره و لاړ شم .

دلمر لو یدو شا اوخوا کـی‌المانانو سا تو نکی پیاو ړی کړ . پدی مانا چی دیو ی لا ری سره شل کسه ماشیگن چلونکی یـی هغوی ته ز یات کړل .

موږ یی اړ ایستو گا مو نه چابك واخلو . هغو ټپیانو چی یی نشو کو لای له نورو سره جوخت‌گا مونه پور ته کړی د لیار ی په مینځ کی په گو لیو و ژل کیدل. دوه کسه زندانیا نو چی د تیښتی عزم یی در لود ل لدی کبله چـی‌سپوږ می وه او هر چیر ته‌ښکاره اودځا رنی لاندی و لدی تصمیم‌نه‌واو ښتل .

دشپی شومه کی یو ی کلی‌ته چی ډیره برخه یی سوز ید لی

وه ورسیدل . لکه د پسو نو پشانی‌یو ی کلیسا کی چی لوید لی‌گنبدیی در لوده پنډ یی کړو .

مجبور وو ، د کلیســا دغولی په لو ځو تیړو باندی شپه ورځ کړو .

زمو ږ له جملی هیڅا کمبله‌نه‌در لود ل چی د هغه پر مخ‌موخوب کړی وای . څینو نیمه تنه یی هم‌نه‌در لودل . او دپنبی لی زیر پیراهنی (گینجی) یی اغوستی وو . زیا تره‌یی هغه در جه لړو نکی وو چی‌خپل نیم تنه یی گا نی لی له مینځه وړی‌وی ځو دښمن د هغوی په نظا می هو یت پوه نشی . آن هغه کسا نچی دتو پخانی له برخی نه هم وو . نیم تنه یی نه در لودل . ځکه هغوی‌یی لوڅ دماشینګنو له شا نه د ډزو په وخت کی نیو لی وو .

با رانی شپه وه او ټو ل‌لانده‌شوی وو . دبام یوه برخه دتو پ دړه‌ی گانی یابم و را نه کړی وه اوبله برخه یی هم دشر بنل په مرمیو باندی سوری . سوری شوی وو .آن د کلیسا دمحراب یوه نقطه هم وچه پا تی نه وه .

هو . ټو له شپه لکه پسو نوپشانی چی په تور غو جل کـــی تیروی تر سبا پوری‌په‌پښو ودریدود شپی په شومه کی می یو لاس په خپلو او ږو کی احساس کــــړ.وروسته می واو رید ل یوچا وویل:

ــ ملگری ټپی یی !

منـظور می تر ی و پو ښته‌و یی ویل ډاکتر دی ښبا یی ماسره مرسته و کړی . و می ویل چی‌کیڼ‌لاس‌می ېر سیدلی دی او دمات‌شوی آواز تری خیژی او ډیر درد لر ی ما به له پښو نه و غورزو ی . پــه جذاب آوازی راته وویل چی نیم‌تنه یی می و با سم او ما هم دا کـــار و کړ . هغه په نر یو او وچوگوتوزما لا س معاینه کړ . رښتیا ډیر دردیده ! .

پداسی حال کی چی غا ښونه‌می چیچل هغه ته می وو یلی چـی هغه داکټر ندی اود څا رو یوډاکټردی . و لی هغه لکه شیطان پشا نی د تیرې زړه و لری او ددرو ځا ی‌تر فشار لاندی ونیسی ؟

هغه په داسې حال کې چې‌خپلو معاینو ته ادامه ورکول ماته-
یې وویل ستا و ظیفه یوه چو پتیاده او بس . انتظار یې نه در لوده
له هغه سره هغسې خبرې وکړم ستر گې مې و بریښیدې .

کله چې به خود شو مه ترې‌مې و پو ښته :

بې کفایته فا شیسته خـــه کوې . ما ت شوې لا س خو څوك
داسې نه تاووی .

دخندا آ واز مې ددې کلمو په‌ادا کو لو کې او ریده .

فکر مې کاو ه په ښې لا س‌به مې حساب ته رسیږي . لکه چې
ښه سړې یې . لاس ما ت شوی‌ندی‌بې ځایه شوی وو . په ځای مې‌کړ.
ښه .ښه خو یې ، ښه وم درد مې‌نه احسا سوو . د زړه له کومې نه
مې غو ښته چې متو جه شي .

له هغه نه مې تشکروکړ . هغه‌په تیارو کې تګ ته یې ادا مه ور-
کووه او پو ښتنه یې کو له .

- څو ك ټپي ندی ؟

هغه یو ربښتینی ډاکتر وو چې‌مقد سه و ظیفه یې آن په تیارو او
زندان کې هم ترسره کوو .

په هغه نا را مه شپه کې آن‌تشناب ته د تګ اجازه هم چانه-
راکو لو .

ددې مو ضو ع نه سا تو نکې‌هغه وخت چې کلیسا ته دو ه دوه
کسه دا خلید لو و ویل . داچلندیومسیحی یې چې زمو ږ سره و ډیر
و زوراوه .

لومړی یې هیڅ نه ویلې او زغملې یې . تر څو چې او ښکې یې
په سترګو کې ټو لې شوې‌اوپداسې‌حال کې چې بې تا به شووی‌ویل:

آخر زه نشم کولای یو مقدس‌ځای په نا و لو ولړم ! زه یوباایمانه
عیسوی یم . ملګرو څه کار وکړم.

خپله پوهیږي مو ږ څه رنګه‌سړې وو .

ځینې خند ل او ښکنځلې یې‌کو لې . نورو هم هغه په نصیحتونو
مسخره کول .

لومړی دامسئله زمو ږ دتفریح‌و سیله و ه خو تریخ‌عا قبت یې‌ځان سره در لود .

هغه د کلیسا د درواز ی پــه‌وهلو پیل و کړ څو ور ته دو تلو اجازه ور کړی .

وا یې چې هره درواز ه وټکوی‌یو ځواب اوری .

زمو ږ دو ست هم ځـوا ب‌واو رید . خو هغه ځوا ب پر تــه د گو لیو ورو لو غږ نه چې دیو فا شیست له خوا فیر کیده بل شی نه وو .

هغه د ځمکی پرمخ پریوت .

دری کسه نور هم ووژل‌شول‌او یو نفر هم ټپی شو چې سباپوری ژوندی پا تی نشو .

مړی مو یو ی خوا ته کړل په‌فکر کی لاهو شو . زمو ږ زندا نی تو ب داسی پیل شویو بل سره نژ دی شو . څو پوه شو چې‌هریو له کوم ځای نه را غلی یو او څنگه‌زندانی شوی یو . هغه کسان چــی دیو ی برخی او یو گروپ وو په تیارو کی دیو بل په لټو ن بوخت شو ل . زما تر څنگه دوه کسه‌سره‌خبری کو لی . یو د هغوی نه بل‌ته یی چې د یوی برخی‌فرما ن‌ورکونکی‌یی نو مو وویل :

ـ که چیری سبا مخکی‌دلیاری‌هلو ددوا م نه و غوا ړی مو ږ په‌یوه لیکه کی د کمو نیستا نو او یهود یانو د پیژند لو لپاره ودروی .لازمه نده ځا ن پټ کړی .

دمرگ له خطر نه نشی خلا صید لی . فکر کوی یوا ځی دنیم تنه یی په ویستلو سره تا له عادی‌سر تیری سره نشی تو پیر و لی . ملگر یه تیرو تی یی . ستا لپاره درنځ گا للو توا ن نلرم .

زه خپله هغه څوك یم چې‌تاپه‌گو ته کوم . پوهیږم ته کمو نیست یی او ډیر ز یار دی وایست چــی‌زه هم گوند ته دا خل شوم . بنــه نو اوس هم باید په ویره سره دی‌ځټکی خو ړ لو ته کښینی .

دا غږ تر ټولو ما ته نژ دی‌ووله هغی خو انه دیو ځوا ن غږ می واو رید چې ویل یی :

ـ كريژ نف ما تل گما نكووته ناو لى سرى يى . په تيره بياهغه وخت چى گو ند ته د نه دا خليدولپاره دى دبى سواد توب عــذر وراندى كوه .

و لى هيڅكله مى فكر نه‌كولوچى خاين به شى . و لى تر څوار لس كلنى پورى ښوو نځى ته لا ړنشوى .

ـ هوو لا ړم . مگر څنگه ؟

دوا ړه يوه شيبه آرا مه‌شول‌و روسته له يو ى مودى نه فرما ن ور كونكى چى هغه مى له غږ نـــه‌وپيژند په پسته ژ به يى وويل :

ـ ملگرى كريژ نف .ما مه په‌گو ته كوه .

ـ زه دى ملگرى نه يم .ملگرى‌دى دجبهې د كر ښى نه ايخواتــه پر يښودل !

هيله كو م داشا ن هيلى لــه‌مانه مه كوه . بى ځايه ما ته ملگرى مه وايه !

گټه نلرى . زه تا په گو ته كوم . زه له هغو كسانو څخه يم‌چى لومړى غواړى خپل ټغر له اوبو نه‌و باسى .

چو پ شول .دى مينځ كى‌له‌ډيره‌فكره د داشان حيوانى عمل نــه‌ و لړ زيدم . ځا ن سره مى وويل:

ـ نه زه نه پريږ دم خپــــل‌فرما ن ور كونكى په گو ته كړى. ته په خپلو پښو له دى كليسا نـه‌د باندى نه ځى . بايد مړى و ى له هغى نه وايستل شى . و روسته تردى چى هوا رو ښا نه شوه‌گورم يو سړى چى غټ او دغو ښو ډك مخ‌يى در لود خپل لا سو نه يى دسر لاندى ايښى او پر مخ‌پروت دى. په څنگ كى يى يو ځوان له لنډى او پيننى پزى سره چى يوا ځــى‌يو زير پيرا هنى ( گنيځى) يى په ځان كى وو . ناست وو . ورنو نونه يى لا سو نه تاو كړى او رنگ يى له سره الو تى وو .

پو ه شو م چی دا هلکـــی‌یوا ځی نشی کو لی د هغه کاریو
طر فه کړی او لا زمه وه پخپله یی‌یو طر فه کړم .
دهلکی په او ږه می لاســـ‌کیښود او پو ښتنه می تـــــر ی
و کړه .
ـ ته فرما ن ور کونکی یی.
هغه ځه ونه و یل اوسر ته‌یی د تصدیق په ما نا ټکان ورکړ.
بیا یی پداسی حال کی چی دوست‌یی پرمخ ویده وو . ور ته مـــی
د ښوده و می و یل :
ـ هغه غوا ړی تا په گو ته‌کړی .
هغه بیا خپل سر ته ټکا ن‌ور کړ . ومی ویل :
ـ ښه نو . پښی یی داسی‌په غیږ کی ټینگی کړه چی و نشی
کړای لا س او پښی وو هی‌زرشه.
هغه چی و یده وو . ځـا ن‌می پری وا چوو د هغه ستو نی‌می
په گو تو کی وینو . آن دا چـــی‌د چیغو کو لو وخت یی هم ونـــه
مونده . یوه شیبه می هغه همدا ـشا ن لاندی و ینو او صبر مـــی
و کړ. کله چی بد ن یی سست شو ځا ن سره می وو یل:
یو خاین لږ .
ژ به یی د باندی لو ید لی وه .
زورو نکی احسا س را تـــه‌پیدا شو . لکه چی دانسا ن پـــه
ځا ی می ما رو ژ لی وو .
په ژوند کی می دا لومړ ی‌ځل وو . چی انسا ن می وا ژه .
هغه هم دخپلو و طنوا لو نه .
فکر نه کو م چی هغه می دهیواد والو نه وو . هغه له غلیم‌نه
هم بد یا خا ین وو .
کله چی له ځا یه پا ځیدم فرما ن ور کونکی ته می و ویل :
ـ پا څیږه ملگری له د ی ځا ی نه و لاړ شو . کلیسا لو ی
ځا ی دی .
هما غسی چی فقید کریژ نف ویلی وو گمیځ د کلیسا نه

د باندی پداسی حا ل کی چی یـوگرو پ ماشینگن لرو نکو محاصره کړو . یو ه لیکه کی یی ودرو لواو د(اس، اس ) دری صا حـب منصبا ن هغه کسا ن چی خطرناك نظر ته را تلل له لیکی نه یـی ویستل . زمو ږ نه یی پو ښتل کوم یو کمو نیست او یا صا حب ـ منصب یو . و لی ځواب یی وانه وریدل . کو م خو ك صفته هم پدی مینځ کی نه وو چی بل په گو ته کړی . ځکه ډیر یی کمو نیست او پا تی برخه یی فرما ن ور کونکی یا صا حب منصب وو . د هغه دوه سوه کیږی لیکی نه یی یوا ځی ځلور کسه یی وا یستل :

یو یهو دی او دری پیاو ړ ی رو سی صا حب منصب .

رو سانو لپاره د پو ځکی پوښوا لی او دو پښتو مجعد وا لی (کاږ گو ټی) د تکلیف و سیله گر ځید لی و ه .

اس . اس انو فقط هغو ی ته به نژ دی را تلل او ویل به یی : جود هغو ی که هرڅومره ټینگار ښود له چی رو سی دی گټه یی نه در لوده .

صرف دومره یی چی و یلی له لیك نه وو ځی کار تما میده .

هغه بد بختا ن یی و ژل اومو ږ یی هم په مخ بیو لو .دگروپ فرما ن ور کونکی چی د هغه خاین په زندی کو لو کی یی ما سره مرسته کړی وه تر پز نا ن پوری زما تر ځنگه یی لیار وواهـــه . دخو زیدلو په لوم ړ نی ور ځ یـی ځان ما ته ور ساو ه . زمالاسویی ټینگ و ینو. تقدیر همدا سی ووچی په پز نان کی سره بیل شو.

ملگر یه دا سار ت دهما غه لوم ړی ور ځی نه د تیښتی په فکر کی و م و لی غو ښته می دادحاصل کړم چی نه نیو ل کیږم . دپز نان د لیار ی په او ږدو کی هرچیرته یی چی ځا ی په ځای کو لو فر- صت نه تر لا سه کیده. په پزنان کی هغه شی چی غو ښته مـــی ورسیدم .

مو ږ یی د می میاشتی پــه و روستیو کی د هغو مړ و ته دقبر کیند لو لپاره چی دوینو داسهال له امله مړه شوی وو . یوه ځنگل ته دبندی سا تلو د ځای تر ځنگه و لیږ لو . کله چی دپز نا ن د

ځمکی په کیند لو بوخت وم .پام می شو چی دسا تو نکو نه دو ه
کسه په ډو ډی خو ړ لو بوخت‌دی‌او دریم یی لمر ته نا ست سو چ
وهی . بیل می پریښود و رو می‌ځا ن دیو اغزی دبو ټی شا ته پټ
کړ . و روسته له څه مودی تـم‌کیدو نه د ختیځ خوا ته می پـــه
منډو لیاره په مخکی و ینوه .

د سا تونکو پام په هما غه وخت کی زما تښتیدو ته‌وانوښت.
په وچ بد ن کی می هغه توان چی‌په یوه ور ځ کی می څلو ینښـــت
کیلو متره د زندانی سا تلو لـــه‌ځای نه لر ی کړی نه لیده .

عا قبت دا زیار هم کوم ځای‌ونه نیو . څکه چی څلور مه و رځ
باندی . پداسی حال کی چی ډیره‌لیاره هم له اردو نه لر ی شو ی
وم یی نیو لم . هغو ی زما د پښی‌منډ د تاز ی سپو په مرســــته
تعقیبول او دتورو اور بشو پــه کــرونده کی چی لاریبل شوی نه‌و،
ماته ورسیدل .

د سبا ستر گه ختلی وه چی‌ځا ن می په آزاده فضا کی ومو ند.
لدی ځا یه تر ځنګل پوری تخمین‌دری کیلو متره لیاره پا تی‌وه .
دور ځ په رڼا کی‌می نشو کو لی‌په‌ښکاره ډو ل هلته وګرځم.

څکه ځو له ور ځ په تـــورواور بشو کی و یده شو م. لا می
جیب له و ږو نه چی په لاس مـی‌شکوو ل ډ ك کړی نه وو . چـی
د سپو عو .عو او دمو ټر سیکل غره هار می واو رید .

زړه می له تگ نه پا تی‌شو.سپی هره شیبه را ته رانژ دی
کیدل . پداسی حال کی چی مخ‌می‌په لا سو نو پټوو . څو دسپـــو
یر غل پری ونشی د ځمکی پرمخ‌و غزیدم .

سپو . په هما غه لومـــړ ی‌شیبه کی زمازړی جامی څیری‌څیری
کړی لو ځ او بر بنډ یی کړم . په‌تورو اور بشو کی یی د یخوا .
ایخوا او هر چیر ته یی چی‌غوښتل را کاږلم . په آخره کی غټ سپی
په دو پښو د سینی پرمخ می جګ‌شو غوښته یی ستونی می څیری
کړی و لی و ی نشو کړای .

وروسته دو ه ، کسه‌المانی‌دمو ټر سیکل سره را و رسیدل

